وې، چې په پخوانۍ پارسي کې هم د نثر ليکلو مقبول سبک دغه و. مګر وروسته چې د مغولو د دورې ناوړه نثر رواج سو، دغه وضاحت او جزالت او خوږ والی يې بايلود. لاندې د دواړو ژبو څخه مثالونه وګورئ. د ابو الفضل بيهقي سره پرېکړې او واضحې جملې: *پس رسول بر پای خاست و منشور و نامه را بر تخت نهاد و امير بوسه داد و بوسهل زوزنی را اشارت کرد تا بايستد و خواندن گرفت.*[1]

د عطا ملك جويني اوږده او سره نښتلي معطوف عبارات چې څو قرنه تر بيهقي وروسته د مغولو د دورې په سبك ليکل سوي دي: *به سبب تغيير روزگار و تاثير فلك دوار و گردش گردون و اختلاف عالم بوقلمون مدارس درس مندرس، و معالم علم منطمس گشته و طبقه طلبه آن در دست لگد کوب حوادث پايمال زمانه غدار و روزگار مکار شدند، و به صنوف صروف فتن و همحن گرفتار، و در معرض تفرقه و بوار معرض سيوف آبدار شدند و در حجاب تراب متواری ماندند.*[2]

په پخوانۍ پارسي کې د بيهقي او د ده د معاصرينو ليك له طبيعي محاورې څخه ليرې نه دی، اما د مغلو تر دورې وروسته اکثر ليکونه د محاورې له ړوله دونې ليرې دي چې فرق يې په لومړي نظر سړي ته ښکاري.

د سليمان ماکو پښتو نثر هم د پارسي د پخې انشا رنګ لري. کوم نثر چې په غزنوي دوره کې له ٤٠٠ هـ ق نه تر ٥٠٠ هـ ق پورې مروج و. لاندې جملات د نمونې په ډول د سليمان ماکو له تذکرې څخه راوړل کيږي:

*نقل کاوه سي چې په روزګار د غازی شهاب الدين چې په ړيلی کې هغه ستر واکمن تاتوبی ور وبناونده او هم هورې مړ سو.*[3]

---

[1] تاريخ بهقی ص٤٨

[2] جهانکشای جوينی ج ١ ص ٤.

[3] د سليمان ماکو تذکره.

خلاصه:

د سلیمان نثر د عمومي محاورې څخه لیرې نه دی، جملې یې پرې پرې دي، وضاحت لرې، مقاصد لنډ لنډ ادا کوي، د یوې جملې خبر په بله پورې معلق نه پرېږدي او ځینې هسې زاړه تعابیر او ادبي مصطلحات هم لرې چې اوس نسته.

د مثال په ډول *تناکې وچاودلې* د ښنو. چې مقصد یې په خپل مسکن کې آرام کول او هوسایي ده.

ډېر *زښت یې ووژل*. چې په اوسني اصطلاح له لومړیو دوو کلمو څخه یوه کافي ده، او دواړې نه وایو او دا *زښت*-زخت هغه د درې-پارسي سخت دی، چې د تاکید لپاره په ساماني او غزنوي پارسي کې ډېر مستعمل و او اوس هم موږ په پښتو کې کله کله وایو مثلا سخت یې *وواهه*. بل ځای وایي: *پر نړی د ستن ږغو وه* یعني پر دنیا یې د روحانیت او ستانه توب آوازه وه، چې اوس نه د ستن او نه د ږغو کلمات سته او نه داسې تعبیر څوک کوي. ښایي چې دا د هغه وخت تعابیر وي، چې اوس له ژبې څخه وتلې او مهجور دي.

دغسې نور ډېر کلمات په دې یو څو مخو کې مومو چې اوس یې په ژبه کې استعمال نادر دی او مړه ګڼل کیږي مثلا ګروهیدل *(ګرویدن)* مصدر پخوا موجود و، او د متقدمینو په دوره کې اصلې عنصر او ماده‌ګروه د عقیدې معنی در لوده، لکه چې د شیخ رضي او نصر لودي په اشعارو کې د ګروه کلمه راغلې ده، دلته د سلیمان ماکو په نثر کې د دې مادې څخه وګروهید په فعلې ډول راغلی دی، چې معنی یې *ګرویدن و عقیده کرد* ده. دا کلمه په وروستیو ادباوو کې هم مستعمله وه، مثلا خوشحال خان خټك وایي:

نه یې زړه په ما نرمیږې نه ګروهیږي
خدایه څه مې سریکار شه له کافره

بمیا *(بومیا)* پخوا د رهبر او مرشد په معنی و، سلیمان لیکي: *څو چې بمیا سو*

د وګړیه یعنی د عوامو رهنما سو، چې اوس دا کلمه متروکه او مړه ده.

دغسی دي: پارکی (قطعه شعر) ستر څښتن (خدای بزرگ) ګڼون (شمار) کول (خاندان) دښن (دشمن) جوبله (جنګ) او نور کلمات راوړي چې اوس نه دي مستعمل او اکثر دغه کلمات تر ۱۰۰۰هـ پورې لا هم په شعري دیوانو کې لیدل کیږي اما له محاورې څخه وتلي دي.

۲- د پارسي اثر:

د پارسي ژبې د نثر اثر هم د سلیمان په انشأ کې ښکاري او دا د محیط بوه طبیعي اغیزه ده، چې ژبه هیڅکله ځان نسې ځنې ژغورلای، ځنې تراکیب او جملې د سلیمان په نثر کې سته چې خاص د پارسي تراکیبو رنګ لري، مثلا مضاف الیه دمخه کول، لکه: *او تناکی وچاودلی د پښو* چې دغه باید داسې وی: *د پښو تناکی وچاودلی* او نور دغسې تراکیب چې د پارسي ژبې اثر پکې ښکاره دی.

سلیمان که څه هم د پارسی کلمات ډیر نه راوړي، او اکثراً پښتو سوچه الفاظ لیکي، خو بیا هم د ده نثر د پارسي کلماتو له خلطه نه دی خالي او دغه محیطي اثر یی قبول کړی دی، وګورئ دی د *روزګار* کلمه کټ مټ هغسې استعمالوي، لکه د پارسي ژبې پاخه پخواني لیکوال.

بیهقي لیکي: *و به روزګار سلطان ماضی چون معدان والی مکران ګذشته شد.*

سلیمان وایي: *په روزګار د غازي شهاب الدین چی پر کفر یرغل و.* بل ځای لیکي: *په روزګار د شیخ بیټني کې د ده ورور چې سړبن نومید.*

دغه نور خالص پارسي کلمات هم د ده په نثر کې سته، لکه درخواست، سپاس، درود، خاکپای، خدای مهربان او نور... چې د پارسي ادبي اغیزې د سلیمان په نثر کې رابښيي، او دا اغیزی په یوه مشترک چاپیر کې د ژبو تر منځ یو طبیعي او حتمي امر دی، مخصوصاً د پښتو او پارسی تر منځ چې له یوې ریښې څخه دوې آریایي ژبې دي.

۳- د عربي اثر:

د سلیمان په نثر کې تر پارسي د عربي ژبې اثر هم ډېر او درووند ښکاري. او د دې علت همدا دی چې عربي په دغو وختو کې د پښتنو دیني او درسي ژبه وه، او که به چا له علمه سره مینه درلوده، هغه طبعاً عربي زده کوله، ځکه علم یوازې په عربي ژبه کې و، او داسې هم ښکاري چې سلیمان یو متدین او تصوف ته مایل او د دیني علومو طالب سړی و، ځکه چې دغه ټول په عربي و نو به سلیمان عرّبي کتب لوستلي وي، او د ده د حیات په چاپیر کې به د عربي ادبي او دیني او تصوفي اثر خورا کلک او هم ډېر و.

د عربي اثر یوازې په پښتو نثر کې نه دی، بلکه د ساماني او غزنوي دورې د پارسي نثر په شهکارونو لکه د بلعمي تاریخ او تفسیر طبري او د بیهقي تاریخ آل سبکتګین او نورو ټولو کې د عربي نثر هسې واضح او ښکاره اثرونه لرې، او د پارسي په نثر کې په ځرګند ډول، نو پښتو نثر خو له یوې خوا مستقیماً د عربي تر اثر لاندې و او له بلې خوا یې له پارسي نثره استفاده کوله چې هغه هم د عربي له اغیزو څخه خالي نه و، نو له دغو دوو جهتو څخه د سلیمان په نثر کې د عربي اثرونه خورا څرګند او ښکاره دي.

یو پښتون معاصر لیکوال د سلیمان پر نثر هسې لیکي: غټه خبره چې په دې نثر کې نظر ته راځي دا ده چې په دې کې عربي رنګ معلومېږي، جمله بندي او ادا د پارسي د عربي تر تأثیر لاندې ده. زه دا نه شم ویلای چې هغه وخت ګوندې د پښتو طبیعي آهنګ دغسې و،بلکه کیدی سي، چې پخپله سلیمان د عربي تعلیم یافته اوسي، نو ده چې د پښتو نثر لیکلی دی، طبعا د عربي تر اثر لاندې راغلی دی. د سلیمان په عربي تعلیم باندې دا خبره دلالت کوي، چې د ده په نثر کې عربي الفاظ لکه قطب، قدوة الواصلین، مراقد او داسې نور شته، او صحیحه خبره دا ده چې په دغه وخت کې پرته له عربي څخه بله د تعلیم ذریعه وه هم نه.

دا چې موږ ووېل چې د ده په نثر کې د عربې اثر معلومیږي، د لاندې جملو څخه ښه څرګندیږي:

١. وایم حمد او سپاس د لوی خاوند.

٢. نقل کاندې چې شیخ بیټنی هوسید په غره د کسې باندې.

٣. سړبن نه درلود زامن.

٤. خدای مهربان د اسماعیل په برکت سړبن ته نصیب کړه دونې زامن چې تر وس تیر سو کښون د هغو.

٥. ړکه سوه مزکه د پښتنخا د دوی په کول.

په پورته جملو کې د عربې رنګ څرګند دی. څوک چې د عربې سره آشنایي لري، هغوی پخپله پوهیږي زه نه غواړم چې د نحو او جمله بندۍ د اصولو په بیان چې یو رقم تحصیل، د حاصل دی، خپل مضمون اوږد کړم هو دومره قدرې به ووایم چې دغه جملې نن ورځ موږ په پښتو کې څه رنګ ادا کوو وګورئ:

١. د لوی خدای حمد او سپاس وایم.

٢. داسې نقل کاندې چې شیخ بیټني د کسې په غره اوسیده.

٣. سړبن زامن نه درلودل.

٤. مهربان خدای د اسماعیل په برکت سړبن ته دونې زامن ورکړه چې اوس د هغو کښون تر وس تیر شو.

٥. د دوی په کول د پښتونخوا زمکه ړکه شوه.[١]

اوس که موږ د سلیمان ماکو دغه څو جملې په غور وګورو نو په ټولو جملو کې فعل تر خپلو متعلقو مفاعیلو دمخه راغلی دی، چې دا د عربې اثر ښکاري، مثلا که لومړی جمله په عربی وې نو به *الحمدلله العظیم* وې چې د پښتو جملی رنګ یی هم

---

[١]کابل کلنی ١٣١٩ ش کال ٣٤٢ مخ د مرحوم خادم لیک.

دغسی دی. او د عربي د تلقید اثر پکې څلیږي، او دا د عربي ژبې د جمله بندۍ تقلید له ٤٠٠ هـ ق څخه په پارسي کې هم مروج و، چې د بیهقی دا جملی یی ښه څرګندوي: *امیر گرد بر گرد قلعه بگشت*، *جنگ جایها بدید*، *ننمود پیش چشمش* و *همت بلند* و *شجاعش آن قلعه* و *مردان بس چیزی*. بل ځای وایي: *امیر نشاط شراب کرد*، و *ننمود بس طربی که دلش سخت مشغول بود*.

په پښتو جملو کې چې د سلیمان له نثر را واخستلې سوې، کټ مټ دغه اثر څرګند دی، لکه چې هم تاسی ته ښکاره سوه دغسی هم*نقل کاوه سي* یا *هسې نقل کاندي* د عربي اثر دی، چې لیکوالو به د عنعنې پر وخت راوړ او دا رسم هم په پښتو او هم په پارسي کې پاته سوی دی.

# د سلیمان ماکو د نثر ممیزات

اوس هم چې د پښتو د لومړۍ نثر اساسي عناصر یعني د پښتو او پارسۍ او عربۍ اغیزې وځیړلې سوې یو څو مهم ادبي ممیزات هم لاندې ذکر کیږي، چې په دی نثر کې لیده سي.

## ۱. ایجاز:

د سلیمان د نثر یو ځرکند مزیت د جملو ایجاز دی، چې دغه ممیزه یی د پارسۍ له قدیمه نثره سره شریکه ده، تر غزنویانو دمخه تر (۴۰۰ هـ ق) پخوا د پارسي نثر نهایت موجز او جملی یی لنډې دې، چې دی مطلب ته ما دمخه اشاره وکړه.

## ۲. توصیف او توضیح:

د سلیمان په نثر کې ځینې جملې داسې ستـه چې فقط د توصیف او ښو ځرکندولو لپاره راوړلې سوې دي، دا مزیت د پارسي په سامانی سبك کې لږ و، خو د غزنوي دورې لیکوالو ښه پسې ډیر کړ او د مطلب د روښانولو لپاره یی ځینې پله پسی جملی راوړلې چې مقاصد ښه پسې واضح سي.[۱]

د مثال په ډول: *په ویاله د ارغسان هوسیږم او په دې ځمکو پائیږم.* بل مثال: *شیخ بیټنی هوسید په غره باندې او هلته دیره و.* بل مثال: *د دوی په خدمت خاکپای وم، او هر کله په سلام ورته ولاړ.* چی په دغو مثالو کې دوهمې جملې د توضیح او توصیف لپاره راغلي دي.

## ۳. د افعالو تکرار:

د پارسي پخواني لیکوال تر غزنوې دورې دمخه د هرې جملې لپاره د فعل ذکر

---

[۱] سبك شناسی ج ۲ ص ۶۹

لازم کڼي که څه هم يو فعل په جملو کې مسلسلاً تکرار لا هم سيې د افعالو تکرار لکه وروسته چې يو ادبي عيب وګڼل سو، د ساماني عصر په نثر کې عيب نه و، بلکه د الفاظو تکرار او د جملو تکرار هم کيده، او دغه تکرار په اوستا او پهلوي ژبو کې هم و، چې پارسي ژبې ته راغلی و، او دا يو قديم ادبي سنت ګڼل کيده.[1]

د مثال په ډول رودکي د ځوانۍ د غاښو په صفت کې داسې وايي: *سپيد سيم رده بود و در و مرجان بود، ستاره سحری بود و قطره باران بود*. چې بود څلور واره پکې تکرار سوی دی، يا مثلا لکه دا جملې چې د (۳٦۰ هـ ق) د حدودو دي: *من خواستم که کتابی بنا کنم و هر چه شايسته اندرو ياد کنم... و بس قوتها شان پيدا کنم*.[2] د سليمان په نثر کې هم دغه د افعالو تکرار سته چې د قديمو نثرو اثر دی او کله دونې ډير افعال ذکر کوې چې په يوه ليکه کې څو مکرر فعلونه راوړي، د مثال په ډول: *بختيار په پښتو سندرې کړينه، اوښې توېوينه، خدای ته نارې کړې غلبلې کړې، پاړکي لرينه* . و ګورئ پنځه فعله په يوه سطر کې سره يو ځای سوي دي، چې دوه کټ مټ تکرار هم دي.

دلته بايد دا هير نه سي چې د ژبې دغه طبيعی او روان سبک ډير ښه دی، او د افعالو د حذف او عطف ناروا دود وروسته رواج سوی دی، چې کله کله د کلام رنګ او خوند هم ور واړوي. موږ بايد په اوسني نثر کې دغه د افعالو د حذف بدعت رواج نه کړو، او د قديم طبيعی او خوږ سبک پيروي وکړو

٤. د روابطو حذفول:

لکه دمخه چې مو وويل: قدماوو د فعل تکرار عيب نه باله، او يو فعل يې مکرر هم د څو جملو په پای کې راوړ، خو تر (٤۰۰هـ ق) را وروسته په غزنوي دوره کې

---

[1] سبک شناسی ج ۲ ص ٥٥

[2] الابنيه عن حقايق الادويه، د ابو منصور علی هروی ليك.

لیکوالو په متعاطفو جملو کې په قرینه سره د ځینو روابطو حذف رواج کړ، او کلام ته یې یو راز نوی بلاغت وباخښه. د مثال په ډول د بیهقي په دې جملو کې *است* رابط فعل محذوف دی: خیمه *مسلمانی مك است و ستون پادشاه و طناب و میخها* رعیت. وروسته *ماند* فعل دری ځایه حذف سوی دی *پس چون نگاه کرده آید، اصل ستونست، و خیمه بدان بپا بست و هر گه وی سست شد و بیفتاد نه خیمه و نه طناب و نه میخ*. هم چې باید داسې وای: نه خیمه ماند، نه طناب ماند نه میخ ماند.[1]

د سلیمان نثر لکه د تکرار افعال زوړ خاصیت چې لري دغسې هم د غزنوي دورې د پارسي رنګ پکې ښکاري، او اکثر افعال حذفوي، او له تکراره یې ځان ژغوري. د مثال په ډول: *وایم حمد و سپاس د لوی خاوند، او درود پر محمد مصطفی چې دی بادار د کونینو او رحمت د ثقلینو*..چې یو *وایم* له درود ده سره او بل *دی* له رحمته سره محذوف دی.

۵. د ترنم حروف:

د سلیمان د نثر یوه بله مهمه ممیزه دا ده چې د افعالو په پای کې د ترنم یو نون زیاتوي. او دا هغه خاصیت دی، چې وروسته د پیر روښان او درویزه په سبك کې خورا ډیر سوی او یو فني رنګ یې موندلی دی، یعنی د مسجعو جملو په پای کې د ترنم یو (نه) زیاتیږی. دا ترنم د پښتو لنډیو په آخرنیو سلاییلونو کې عام دی، لکه خورینه، کوینه، راوړینه، د خورې، کوې، او راوړې حالی افعالو پر ځای. مثالونه: او سندرې کړینه، یا اوښې تویوینه یا پاړکې لرینه. چې دلته د کړې، تویوې، لرې افعال کافي دي او (نه) زاید دی.

---

[1] سبك شناسی ج ۲، ص ۷۲

# سجع او موازنه

پخوانو لیکوالو به کله په جملو کې د سجع او موازنې په ډول کلمات راوړل چې د پارسي نثر په ساماني او غزنوي دوره کې دا رعایت لږ و، مګر وروسته چې فني نثر د عربي په تقلید پیدا سو، دا کار ډېر مبتذل او عام سو. بیهقي هم کله داسې اسجاع لري، د مثال په ډول: *فصلی خوانم از دنیای فریبنده، بیك دست شكر پاشنده، و بدیگر دست زهر كشنده.*[1] د سلیمان نثر که څه هم مسجع نه دی خو لکه بیهقي او نور کله داسې موازن او مسجع کلمات لري او لکه چې وویل سوه، د افعالو په پای پوری یو (نه) د ترنم لپاره نښلوي، چې مسجع هم سي دا جملې هم دغسې رنګ لري: *او مراقد د اولیا او واصلینو مې پلټل او په هر لوری مې کاملان موندل.* یا په *جوبله کې ملکیار دا پارکی وویل، چې غازیان وپاریدل او په خیر د زمریو ور توی سول.* دا د سلیمان په نثر کې ځینې داسې اثرونه سته چې د پارسي د ساماني او غزنوي دورې د لیکوالو سره نژدې کیږي او کوم ادبي جریان چې تر ده دمخه دري څلور قرنه په منځنۍ آسیا کې موجود و سلیمان له هم هغه څخه متاثر ښکاري. اما دا زموږ استنتاج او څیړنې چې فقط د ده د کتاب پر یو څو مخو باندې سوې دي، په کامل ډول د هغه عصر د نثر عمومي ممیزات نه سي ښوولای، البته که بل یو منثور اثر له دغه عصره، زموږ په لاس کې وای نو به مو د حتم او یقین په ډول څه ویلې وای. له دې جهته هم د دغه بحث او پلټنې تکمیل هغه وخت ته پرېږدو، چې د پښتو نثر نوری زری نمونې پیدا سي. او ښایي چې دا کار زموږ آیندګان پای ته ورسوي. او دغه اوسنې ارمانونه او منتج معلومات یا نقض کې یا تایید.

---

[1] سبك شناسی ج۲، ص۷۳

# د سلیمان د نثر ځینی ناوړه ترکیبونه

تر اوسه موږ د سلیمان د نثر ښیګړې در وښودلې، او د پارسي او عربي کومې اغیزې چې پکې ښکاري تحلیل سوې. په دې نثر کې ځیني غوټه او سره نغښتلي عبارات او تراکیب هم سته چې ناوړ او غیر مستحسن ښکاري. ځکه د کتاب بشپړه نسخه نسته، او هم دا څو پاڼې چې پیدا سوي دي په خورا بد خط دي، او سړی نسي ویلای چې دغه تعقیدات او ناوړه تراکیب پخپله د مولف او که د ناسخ او لیکونکي تصرف یا سهو ده؟

موږ چې د دغو څو پاڼو سیاق او سباق ته ګورو، ځکه چې د مولف نثر سهل روان او خوږ دی نو دا ویلای سو، چې دغه یو څو جملې او مغلق تراکیب به د ناسخ تصرف یا سهو وي.

دا لاندې تعابیر څرګند او خواږه او د بلاغت له اصولو سره سم په نظر نه راځي: *موسی چې ستر پلار و د قطب تللی و له بختیارانو څخه او میشت و پر ایواد چې سند باله سي. لرغوني برخه زوی د موسی شیخ احمد ته لوی ستانه ورکړ سوی دی، د سنزر لاس ونیو وګروهید او پر نړی د ستن ږغو وه.*

بسم الله الرحمن الرحيم

وایم حمد و سپاس د لوی خاوند او درود پر محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم چې دی بادار د کونینو او رحمت د ثقلینو، لوی لوی رحمتونه دې وي د هغه استازي پر آل او یارانو چې دواړه جهانه په دوی دي روښان اما بعد زه غریب خاوري سلیمان زوی د بارک خان ماکو سابزي چې په ویاله د ارغسان هوسیږم او په دې مزکو پائیږم، په سن دوولس شپږ سوه د هجري تللی وم او د پښتنخا په راغو او کلیو گرځیدم او مراقد د اولیا او واصلینو مې پلټل، او په هر لوری مې کاملان موندل، او د دوی په خدمت کی خاکپای وم او هر کله په سلام ورته ولاړ.

چې له دې سفره په کور کې کښېنستم او تناکې مې وچاودلې د پښو، بیا پاڅیدلم او له ځښتنه مې مرستون سوم چې احوال د هغو کاملانو وکاږم او دوی چې هغه ویناوی پاته کړي دي او پښتانه به لولی اوس.

## ذکر قدوة الواصلین شیخ مشایخ بیټني

چې د خدای په پیژندګلوی تر ټولو، لوی او بزرک، نقل کاندې چې شیخ بیټنې هوسید په غره د کسې باندې او هلته دیره او ده به هر کله ځښتن باله او روزه به و، په شپو به د خدای په عبادت بوخت و.

نقل هسې کاندې یارانو چې په روزګار د شیخ بیټنې کې د ده ورور چې سړبن نومید، او پر شیخ هم خورا کران و، سړبن نه درلود زامن او هر کله به ویل خپل ورور ته، بیټني خپل زوی اسماعیل ورکاوه او لوی سو د سړبن په کاله. خدای مهربان د اسماعیل په برکت سړبن ته نصیب کړه دونی زامن چې اوس تر وس تیر سو کښون د هغو، د اسماعیل مرقد مبارک واقع دی د کسې پر غره، چې زه هلته تللی وم.

نقل کاندی چې بيټنی سپين ږيری سو، نو ده به هر کله څښتن ستايه، او رب ته به يې درخواست کاوه چې زما په کاله او د سړبن او غرغشت په کول کې برکت کښيږده، بادار قبول کړ د ده درخواست، او ډکه سوه زمکه د ښتنخا د دوی په کول.

نقل کاوه سي چې شيخ بيټني به ډير تر ډير دا سندرې لولولې او د کسې غره کې به ګرځيده په شپې:

لويه خدايه، لويه خدايه ستا په مينه په هر ځايه
غـــر ولاړ دی درناوئ کې ټوله ژوی په ځـــاوی کې
دلتـــه دی د غـــرو لمنې زموږ کيږدی دی پکې پلنې
دا وګړي ډير کړي خدايه! لويه خدايه، لويه خدايه!

دلتــه لږ زمــوږ اوږ بل دی ووږ کورګی دی ووږ بورجل دی
مېنه ستا کې موږ ميشته يو بل د چا په مله تله نه يو
هسك او مزکه نغښته ستا ده د مـــــــړو وده، لـه تا ده
دا پالنه ستـــا ده خدايه! لويه خدايه، لويه خدايه!

نقل کاوه سي چې په روزګار د غازي شهاب الدين چې پر کفر يرغل و، شيخ ملکيار چې غرشين ستانه و هم ملګری و د شهاب الدين چې په ډيلی کې هغه ستر واکمن ټاټوبی وروښانده، او هم هورې مړ سو.

نقل کاوه سي چې په جوبله کې مسلمانان تر شا ولاړه، او کفارو بری وکړ، ليري نه و چې مسلمانان سي د کفارو په کټارو پېنا، او دښنه بری وکړي، چې ناڅاپه شيخ ملکيار راغی، او پر دښن (يی) يرغل وکاوه او ډير زښت (يی) ووژل.

نورو مسلمانانو هم د ملکيار تر اړخ توری وکښې او سره ومروړل (يی) دښنه. ستر څښتن دوی ته په مړانه د شيخ ورکړه لو سوبه او بری چې پخوا هم نه و په

برخه سوی د چا هیڅکله، په هیڅ ځای کې. په جوبله کې ملکیار دا پاړکې وویل، چې غازیان وپاریدل، او په څیر د زمرو ور توی سول:

ښبنتن مو مل دی — اوس مو یرغل دی
ایواد د بل دی — غازیانو گوری؟

ښبنتن مو مل دی
توري تیرې کړی — دښمن مو پرې کړی — منگولی سرې کړی
څه له به تښتو
ښبنتن مو مل دی
که تینگ کړو زړونه — پر بری یونه — چې زمـــــرې یونـه
اسلام را څخه دی
ښبنتن مو مل دی
غازیانو راسئ. — ټول شا و خوا سئ — د شهاب په ملا سئ
ښبنتن مو مل دی

نقل کاوه سي چې شیخ ملکیار ستانه به تل تتله د شیخ اسماعیل ستر ستانه پاړکې ویل او بړغ به (یی) کاوه داشیخ د سرین زوی و:

تښتــه وکـړه له ابلیـسـه — چې ابلیس لعین ښکاره سي
هلتـه ورکـه پلوشـه سي — ټول نړۍ توره تیـــاره سـي
سـړی وران سي له ابلیـسـه — غـوغ د پس په کـتـاره سي
کـه هر چا ابلیس خـرڅ کـړ — نو بې هلتـــه ننداره سـي
کـه سـړی ابلیس ته پړ سـو — نو پر کـــور د ویر ناره سـي

نقل کاوه سبې چې بختیار مې ستر ستانه و، له ده نه څرگند سوې دې، هغه کرامات چې مو وکتل او وویل موسی چې ستر پلار و د قطب تللی و له بختیارانو څخه او میشت و پر ایواد چې سند باله سبې، لرغونې برخه زوی د موسی شیخ احمد ته لوی ستانه ورکړ سوې (و) د سنزر لاس (یی) ونیو وگروهید او پر نړی (یی) د ستن پرغو وه، او د خدای وگړیه به (یی) را بلل په سمې څو چې بمیا سو د وگړیه. بختیار په پښتو سندرې کړینه، اوښې تویوینه، خدای ته نارې کړي، غلبلې کړي، پاړکي لرینه چې یو یې دا دی:

ویر می زړه سوری سوری کړ　　　　راته وگـــــوره ملوکې!
په بیلتـــون کې دی ویاسم　　　　له خـــوږ منه زړگې کـــوکې
راته وگـــــوره ملوکې!
راته وگـــــوره ملوکې!
د بیلتـــون اورونه بل دې　　　　هر گړی می زړگی ســوځې
لیـــونی یمـــه د مـــینې　　　　ســـوځم زه لکه پیلوځې
راته وگـــــوره ملوکې!
راته وگـــــوره ملوکې!
غـــوړولی دې اوربل دی　　　　اور زمـــا په زړگې بل دی
زه بختیار خاورې ایزې سوم　　　　په اور ســوی مې کـوگل دی
راته وگـــــوره ملوکې!
راته وگـــــوره ملوکې!

## (۱) شیخ بیټن

د دې کتاب دغه څو پاڼې چې دمخه راوړل سوې، په هغو کې د شیخ بیټني ذکر داسې سوی دی: *نقل هسې کاندې یارانو چې په روزګار د شیخ بیټني کې د ده ورور چې سړبن نومید، او پر شیخ هم خورا ګران و، سړبن نه درلود زامن او هر کله به یې ویل خپل ورور ته، بیټني خپل زوی اسماعیل ورکاوه او لوی سو د سړبن په کاله. خدای مهربان د اسماعیل په برکت سړبن ته نصیب کړه دونی زامن چې اوس تر وس تیر سو ګڼون د هغو...*[1]

نعمت الله هم دغه عنعنه په مخزن افغاني کې هسې لیکي: *نقل است که سربن برادر کلان بیتنی مفلس بود و از سعادت فرزند هم محروم بود. روزی سربن به خانه برادر خود که شیخ بیتنی باشد آمده عرض کرد که ای برادر! دعای تو در باب جمیع خلایق مستجاب است در باب من توجه نمیفرمایی. حضرت شیخ بیت فرمود که یك پسر مرا ببر و پرورش نما... آخرالامر شیخ پسر خود اسماعیل را به برادر خود سربنی داد...*[2] په دې ډول زموږ د لومړي مورخ سلیمان ماکو قول خو تر نعمت الله څلور سوه کاله دمخه دی. مګر یو له بله ربط او نژدیوالی سره لري او دا ښکاره کوي چې تر زرم هجري کال مخکی هم د شیخ بیټني له بابته پښتنو معنعن او مستند روایات درلودل.

د شیخ بیټني نور احوال موږ ته نه دي معلوم او نه د ده د ژوند وخت مورخانو تصریح کړیدی. فقط د پټې خزانې له لیکونو څخه ښکاري چې اسماعیل د بیټ نیکه زوی او د خرښبون معاصر و، دغه سړی په کال ۴۱۱ هـ ق مړ سوی دی، نو چې د اسماعیل د ژوند وخت د ۴۰۰ هجري حدود وې، ښایي چې پلار او اکا یې هم د

[1] د سلیمان ماکو تذکرة الاولیا.

[2] مخزن افغانی قلمی.

۳۵۰ هـ په حدودو کی ژوندي وي.

## د شیخ بیټني اشعار:

د پښتو په پخوا نو اشعارو کې د شیخ بیټني یو مناجات ډیر قیمتي دی، او دا ادبي ټوټه سلیمان ماکو پخپله تذکره کې هسې راوړي: *نقل کاندې چې شیخ بیټنې سپین ږیری سو، نو ده چې هر کله څښتن ستایه، او رب ته به یی درخواست کاوه چې زما په کول او د سړبن او غرغښت په کول برکت کښیږده، بادار قبول کړ د ده درخواست، او ډکه سوه ځمکه د پښتونخوا د دوی په کول. نقل کاوه سې چې حضرت شیخ بیټنی به ډیر تر ډیره دا سندرې لولې او د کسې غره کې به گرزیده په شپې:*

*لویه خدایه، لویه خدایه!* *ستا په مینه په هر ځایه...*

لکه چې وویل سوه، دا شعر د ۳۵۰هـ په حدودو اړه لري، او له الفاظو او کلماتو یی هم دغه مطلب ښکاري هغه لغات او کلمات چې پکې راغلي دي، اوس ځیني په دغو معناوو مړه دي، مثلا ژوی اوس څوک د مخلوق او حیوان په معنی نه وایی، فقط په زړو ادبیاتو کې کله کله وینو او که دغه کلمه په فعلي معنی واخلو یعنی (ژوند کوي) دا تعبیر هم زوړ دی، او اوس مستعمل نه دی. دغسی هسك هم دلته د آسمان په معنی دی او دا کلمه پدغه مفهوم ډیره زړه ده، پخوا یی آسمان ته هسك وایه مگر اوس هر لوړ شی ته هسك وایو او دا لغوي تحول وروستنی دی. لکه د عربی سما چې آسمان ته هم وایی، او د هر ځای لوړی خوا ته هم وایی.

پر دی شعر د پردیو ژبو اغیزه هم لږ ده او له هغو زړو اثارو څخه دی کوم چې په غرو کې ویل سوي دي، او د عربی او پارسی ژبو له اغیزو څخه تش دي، لکه د امیر کروړ او لودیانو اشعار، مثلا په ټول شعر کې یوه پردۍ کلمه نسته او فقط د خدای مشترکه کلمه لري، چې هغه هم ښایی د پښتو په ریښو کې ډیره نژدې وي، او

د دې سوچه توب علت هم دا دی چې بيټ نيکه په کوه سليمان کې اوسيد او پر ژبه يی د نورو ژبو اثر نه و سوی. د شعر وزن او عروض هم د پښتو ملي بدلو ته ډير ورته دي او يو تکرار کيدونکی کسر لری (لويه خدايه، لويه خدايه) چې دغه قديم ادبی رنگ تر اوسه هم د پښتنو په بدلو کې ليدل کيږي، او ښکاري چې يو پخوانی ادبي مزيت دی، دا شعر د مضمون او ادبي فکر له پلوه هم پخوانيو آريايی سندرو ته ورته دی، ځکه چې په پخوانو آريايی اقوامو کې (کوله-کول) ډير اهميت درلود ، او پر دغه کول باندې اکثر اجتماعی تشکيلات بنا وو، او دوی هر کله خپلې کورنۍ او کهولونه ډيرول او کورنۍ يی د ټولو نعمتونو مرکز گڼله.[1] د شيخ بيټني دا شعر که له ريگويدا سره مقابله کړو، نو د مضمون له پلوه له دی مناجات سره نژديوالی لري: خدای د ژوند واکمن دی، مالك الملك دی، دی ښاغلی کورنی سړو ته ورکوی.

**خدايه موږ ستا مريي يو، ږې اولاده، ږې ښځې مومه وژنه ......[2]**

## (۲) اسماعيل

د پښتنو مورخان او د آسمأالرجال خاوندان ليکي چې اسماعيل په اصل د شيخ بيټني زوی، خو د خپل تره سړبني په کور کې لوی سوی و نو ځکه په سړبن مشهور دی، لکه سليمان ماکو چې ليکي: *اسماعيل د شيخ بيټني په کور کې لوی سوی و، او د سليمان په غره کې ميشته او هم هوری وفات سو.* دا مورخ وايي: *د اسماعيل مرقد واقع د کسې پر غره چې زه هلته تللی وم...*

دغه روايات نعمت الله هم کټ مټ په مخزن کې داسې تاييد کوي: *چون اسماعيل به سن رشد رسيد و از رياضات شاقه به مراتب ولايت رسيد و اين شيخ*

---

[1] د گوستا لوبون تمدن هند ص ۱۸۸

[2] ريگويدا، باب ۷، ف ٦، سندره ۷.

اسماعیل سربنی پسر حضرت بیت است...شیخ اسماعیل سربنی قدس سره صاحب عبادت و ریاضت شاقه بود و مقتدای وقت به علوم لدنی، کاشف اسرار طریقت و حقیقت بوده در ولایت (روه) چون به وطن مالوف رسیدند به مقام خواجه منزل گرفتند و خلایق از جاهای دور به ملازمت شتافتند... سلیمان ماکو اوخواجه نعمت الله هروي دواړه وایی چې د اسماعیل د ژوندانه ځای کوهٔ سلیمان و، بل ځای نعمت الله مورخ تصریح کوي چې د ده مزار په هغه ځای کې دی چې "وازه خوا" یې بولی او وازه خوا د سلیمان د غره په لمنو کې ده. علاوه پر دغه په پټه خزانه کې هم د اسماعیل احوال لیکل سوی او وایی چې دی د خربښبون معاصر و، ځکه چې د خربښبون وفات په ٤٢١ هـ کې دی[1] نو موږ د اسماعیل د ژوند عصر هم دغه گڼو.

اسماعیل د خپلي کورنۍ مشهور عابد او د خدای دوست سړی و، د مخزن افغاني له روایاتو څخه ښکاري چې دی له خپله کوره په سیاحت هم تللی و، او له لویو اولیاوو سره ملاقي سوی و.

## دَ اسماعیل اشعار:

د اسماعیل اشعار موږ ته په دوو وسیلو را رسیدلي دي، لومړی شعر یی هغه دی چې سلیمان ماکو پخپله تذکره کې په دی ډول را نقل کړی دی: نقل کاوه سبي چې شیخ ملکیار ستانه تل تر تله د شیخ اسماعیل ستر ستانه پاړکي ویل او ږغ به یی کاوه دا شیخ د سړبن زوی و.

تنبته وکړه له ابلیسه　　　چې ابلیس لعین ښکاره سبي

ټول پاړکي په متن کې راغلي دي. د اسماعیل یو بل شعر چې د ده پر خانداني

---

[1] پټه خزانه ص ٢١

احساساتو دلالت کوي ، د پټې خزانې لیکوال په دې شرح لیکي: *هسې وايي چې یو وقت خرشبون بابا د اسماعیل د سربن او بیټنې نیکه په مخ کې ناست و، د دوی کور و د کسی پر غره نو خرښبون د پلار او تره له خوا په تګ او رخصت ماذون سو، اسماعیل نیکه داسی نارې وکړلې:*

| | |
|---|---|
| کــــه یون دی یون دی | مخ کې بیلتـــــون دی |
| کـــــه وروره وروره | خـــرښـــبـــون وروره |
| ته چې بیلتـــون کـــړې | زمـــــا ویر وګـــــوره |
| چې ځې مـــــرغې له | تورې کــــــرغې لـه |
| هـــمـــزولي پـاتـه | ځـي چـې بـرغـې لــه |
| د خـــــــدای دپـاره | خـــرښــبــون یاره |
| چې هیــر مــو نه کــړې | زمـــورْ کـــول واړه |
| زړه مـې رپـیـــــــږي | یـار مـې بیلیــــــږي |
| بیلتـــــون یی اور دی | ځـــان په ســـوځــیـــږي |

لکه چې معلومه ده اسماعیل یو روحاني او د متصوفینو مل سړی و، نو ځکه د ده په لومړني شعر کې د وعظ او تلقین او نصیحت رنګ سته. او ځیني عربي لغات هم پکې راغلي دي، چې د ده روحانی حیات ښکاره کوي، اما دوهم شعر خاص په ملي وزن دی او د پښتو ژبې د مخصوصو عروضو او آهنګ نمایندګي کوي، او پردي لغات هم نه لري، نو ځکه ویلای سو چې دا شعر هم د پښتو ژبې په زړه دوره اړه لري، او په هغو اشعارو کې حسابیږي، چې د نورو ژبو اثر پر لږ سوی دی، او داسې نارې تر اوسه هم د پښتو ژبې په افسانو کې سته چې شعرې وزن او عروض یی مخصوص دي، او په یوه خاص آهنګ ویل کیږي.

## (۳) ملکیار غرشین

غرشین د پښتنو یو مشهور ستانه قوم دی، چې پخوا یې یو وچ غر سر سبز او آباد کړی و، نو ځکه دوی غرشین بولې، او دا قوم د کندهار په خواوو کې اوسي او په شمير ډیر لږ دی.[1]

ملکیار له دغه قومه یو خورا ستانه او مشهور سړی دی، چې د پښتنو مورخانو د ده ذکر پخپلو مشاهیرو کې راوړی دی. نعمت الله هروي لیکي چې: *ملکیار د شیخ ابوبکر طوسی معاصر او په ډیلي کې یې یو ځای درلود، چې سلطان شهاب الدین غوري د ملتان د یرغل پر وخت ده ته بخښلی و، او د ده مرقد هم هوري دی.*[2]

دا روایت چې نعمت الله کښلی دی، څو سوه کاله دمخه سلیمان ماکو همدغسی روایت راوړی دی او ځنې ښکاري چې د ملکیار د ژوند وخت د سلطان معز الدین غوري عصر و او دی په جګړو کې د سلطان ملګری هم و ځکه چې سلطان لومړی پلا پر ملتان په ۵۷۱ هـ حمله کړې وه، نو د ده د حیات زمانه هم په دغو وختو کې تخمین کولای سو.

سلیمان ماکو د ده په احوال کې هسې لیکي: *نقل کاوه سي چې په روزګار د غازي شهاب الدین چې پر کفر یرغل و، شیخ ملکیار چې د غرشین ستانه و هم ملګری و د شهاب الدین چې په ډیلي کې هغه ستر واکمن تاتوبی وروښانده، او هم هوري مړ سو. نقل کاوه سي چې په جوبله کې مسلمانان تر شا ولاړه، او کفارو بری وکړ، لیرې نه و چې مسلمانان سې د کفارو په کتارو پینا، او دښمنه بری وکړې، چې ناڅاپه شیخ ملکیار راغی، او پر دښمن (یی) یرغل وکاوه او ډیر زښت (یی) ووژل. نورو مسلمانانو هم د ملکیار تر اړخ توري وکښې او سره ومروړل (یی) دښمنه. ستر*

---

[1] حیات افغانی ص ۱۵۲

[2] مخزن افغانی قلمی.

ښښتن ډوی ته په مړانه د شیخ ورکړه لو سوبه او بری چې پخوا هم نه و په برخه سوی د چا هیڅکله، په هیڅ ځای کې.[1]

د سلیمان ماکو له دغه بیانه ښکاري چې ملکیار یو غښتلی او توریالی سړی هم و، او د توری او ادب له ښتنانو څخه و چې د سلطان سره یې په جهادو او جګړو کې ملګري کړله، داسې ښکاري چې ملکیار تر جنګیالی توب او توریالی توب علاوه، ادبي ذوق هم درلود، پخپله هم شاعر و، او د نورو پښتنو شاعرانو اشعار یې تل لوستل، لکه چې سلیمان ماکو د شیخ اسماعیل سړبني شعرونه د ملکیار له خولې را نقل کړي دي.

د زهد، تصوف او عرفان له پلوه هم ملکیار ښه شهرت لري. او مورخان د ده له نامه سره پران هم لیکی او د ده عرفانی شهرت دونی ډیر و چې تخمینا دوه نیم سوه کاله وروسته سلطان فیروز شاه (۷۲۵-۷۹۰ هـ ق) ډیلي ته نژدې فیروز آباد بنا کړ نو هلته دی پاچا د شیخ ملکیا پران په یادګار یو سرای هم جوړ کړ چې د هغه عصر مورخ ضیأ الدین برنی یې په ۷۵۸ ه ق کال ذکر کوي لکه چی مورخان تصریح کوی.[2] ملکیار په دهلی کی اوسیده، او هم هورې مړ سو، او په دغه ښار کې د شیخ ابوبکر طوسي له مزاره سره یو ځای ښخ دی او سلیمان ماکو د ده یو شعر داسې را نقل کړی.

پر هغه میدان کې شیخ ملکیار د سلطان معز الدین د لښکرو سره یو ځای جنګیدی او نژدی و چې د سلطان لښکر ماته وکړي، نو دې توریالي ادیب او عارف یوه د ننګ او جنګ سندره وویله، او لښکریان یی همت، شجاعت او توریالیتوب ته تشویق کړل. څو په پای کې بریالي سوه، او د جنګ پر ډګر یی سوبه په برخه سوه.

سلیمان لیکي: په جوبله کې ملکیار دا پارکي وویل غازیان وپاریدل او په څیر د

---

[1] تذکرة الاولیا.

[2] تاریخ فیروز شاهی ص ۱۳٤

*زمریو ور توی سول.*

*ښبتن مو مل دی اوس مو یرغل دی هیواد د بل دی*

د ملکیار دا شعر چې په بشپړ ډول د تذکرة الاولیا په متن کې محفوظ دی، د قدیمو اقوامو د حسیاتو او رجز رنګ لري، له هغو سندرو څخه دی، چې پخوانو پښتنو به د جګړې پر میدان ویلې، او مقصد یې دا و چې د زلمو احساسات تاوده کړي او پر جنګ یې ښه وپاروي. د دې شعر عروضي کیف او الفاظ او کلمات سوچه دي. او لکه نور وګړني (عوامي) اشعار یو تکراریدونکی کسر هم لري. چې د هر بند په پای کې ویل کیږي، او د پښتو د مخصوصو اشعارو یو ښه خاصیت دی. شاعر په حقیقت کې یو مبلغ هم دی، او په هر ځای او هره موقع کې د خپلو ویناوو د اغیزمن کولو لپاره د بیان طرز او اسلوب داسې ټاکي چې د ده وینا پر اوریدونکو باندې اغیزه وکړي او د شعر مقصد حاصل سي.

په دی پاړکې کې هم ملکیار د غوري سلطان د جنګیالو د پارولو دپاره دوی ته داسې خطابونه کړي دي، چې باید په اوریدلو یې متاثر سوی وی، او په دوی کې یو ملي او دیني احساس پیدا سوی وی. دا پاړکي بیله نومو نور ټول سوچه پښتو دي، او په آخر پاړکې کې (ملا) د ملګرې او همراهې په معنی زړه کلمه ده، چې د اسعد سوری په قصیده کی هم راغلې ده. او له دې څخه هم ښکاري چې دا شعر د پښتو ژبې په قدیمه دوره اړه لري، او په دغه وخت کې لا داسی قدیم کلمات مړه نه وه او له استعماله نه وه لویدلي. د پښتو په پخوانیو اشعارو کې د امیر کروړ سوري تر شعر وروسته دا لومړی جنګی اثر دی، مګر فرق یې دونی دی، چې امیر کروړ پخپل شعر کې د یوه زبردست او غښتلي قاید رنګ لري او د یوه نامور اتل په ډول شعر وایی خو ملکیار دلته د یو مبلغ په دود خبری کوي، او غواړي چې ملي احساسات په دیني تبلیغ کې وغورځوي او له خپله عرفاني مقامه هم کار واخلي، او د شعر په وسیله د لښکرو روح تقویه کړي نو ملکیار په پخوانو شاعرانو کې هم عارف و هم شاعر، هم جنګیالی او دا دری سره خواوې د ده په شعر کې ستې.

## (٤) قطب الدين بختيار

قطب الدين د احمد زوی د موسی لمسی په قوم پښتون بختیار او د خپل عصر له نومیالیو عرفاؤ څخه چې تر اوسه هم په هند کې لوی شهرت لري. پردیو مورخانو دا سړی نه دی پیژندلی او د ده د پښتونوالي ذکر يې نه دی کړی. مګر د پښتنو مورخانو دی د پښتنو په عرفاني مشاهیرو کې راوړی دی. نعمت الله په مخزن کې د ده مناقب په تفصیل راوړی، او داسی وایی: *حضرت خواجه قطب الدین بختیار کا کي قدس الله سره نام پدر شان احمد بن موسی است ساکن اوش بود که از توابع بغداد است، و تولد آن برگزیده در سنه پانصد و هفتاد و پنج اتفاق افتاد، چون سال عمر ایشان به بیست و پنج رسید، حضرت معین الدین سجزی به آن مکان تشریف آورد خواجه قطب الدین بختیار دست انابت بذیل هدایت ایشان در آورده مرید شد... بعد بر فاقت شیخ جلال الدین متوجه هندوستان شدند در بلده ملتان به غوث العالم شیخ بهاء الدین زکریا ملاقات نمودند...*[1]

په دی ډول نعمت الله د پښتنو مورخ قطب الدین بختیار د خپل کتاب په ډیرو ځایو کې دی (قطب افغان) بولي، او د ده د نورو هم قومانو مشاهیرو نومونه هم راوړي لکه خواجه یحیی بختیار، شیخ شهاب بختیار، شاه ابوبکر بختیار او نور.

دا خو ښکاره ده چې بختیار د پښتنو یو خورا مشهور او ستانه قوم دی، چې تر اوسه هم د سلیمان غره په شا او خوا کې پوندګي او سوداګري کوي، نو ځکه چې پردي مورخان د پښتنو په دغه قوم نه و خبر نو يې قطب الدین پښتون نه دی لیکلی، تش د ده سره بختیار لیکي، فرشته وایی چې دی په اوش کې زو کړی دی، چې د ماوراءالنهر له ښارو څخه و[2] ابو الفضل هم دی د فرغاني د اوش بولي.[3]

---

[1] مخزن قلمی افغانی.

[2] تاریخ فرشته ص ۳۲۸

اوش یا اوچ خو دوه زاړه ښارونه وه چې د سیحون پر هغه بله غاړه ودان وه[1]
ابن خردادبه وایی: دا یو لوی کلی و چې له قبا څخه اوه فرسخه لیری و او اوزګند ته
لس فرسخه پروت و[2] یاقوت هم دا دوه کلي بیل بیل یادوي اوش له فرغاني څخه او
اوچ د سیحون پر غاړه ګڼي[3] نو که موږ د نورو مورخانو دغه قول چې قطب الدین په
اوش کې اوسیده منو ځکه چې د ده پښتنواله پښتنو مورخانو تصدیق کړی ده، نو
دا ویلای سو چې د ده نیکه یا پلار به هغې خوا ته تللی او قطب الدین به هلته زو
کړی وي. دلته دا خبره هم د غور وړ ده چې زموږ پښتون مورخ سلیمان ماکو په
خپله تذکره کې د دی قطب الدین ذکر داسې کړې دی: *نقل کاوه سې چې بختیار*
*ستر ستانه و، له ده څرګند سوی دی، هغه کرامات چې موږ وکښل او وویل، موسی*
*چې ستر پلار و د قطب تللی و له بختیارانو څخه او میشت و پر ایواد چې سند باله*
*سې.*[4] دا روایت خو د قطب الدین د نیکه تګ له خپله وطنه ثابتوي، مګر د ماورأ النهر
پر ځای سند ښیی که موږ دقت وکړو، په سند کې هم په دغو وختو کې یو ښار ودان
و چې اوچ یا اوچه بلل کیده، مورخان یی د سلطان معز الدین غوری په فتوحاتو کې
د ملتان سره یو ځای راوړي[5] او دا ښکاری چې اوچ د سند یو مشهور ښار و. نو
که د قطب الدین پلار او نیکه په دغه ښار کې اوسیدلی وی ځکه چې د قطب الدین او
د ده د پلار نور عرفانی معاصرین هم په ملتان کې و، نو به د سلیمان ماکو قول
اصح وي، په هر صورت قطب الدین خو پښتون و، چې یی له خپله قومه بختیارانو

---

[3] آئین اکبری ج۲ ص ۱٦۹

[1] حدود العالم ص ۲٤

[2] المسالك و الممالك ص ۳۰

[3] معجم البلدان ج۱ ص ۳٦۸

[4] د سلیمان ماکو تذکره.

[5] تاریخ معصومی ص ۳۳، تاریخ مبارک شاهی ص۵-٦، طبقات اکبری ج۲ ص٦۲

ځخه تللی یا د سند په اوچ یا د ماوراً النهر په اوش کې اوسید، لکه دمخه چې وویل سوه، په هند کې یی شهرت موندلی دی.

قطب الدین د مخزن افغاني او آئین اکبري او مخبرالواصلین په قول د لومړی خور په ۱٤ په ٦٢٣هـ او (فرشته ٦٣٤هـ) د عمر پر ٤٨ کال وفات او په دهلي کې ښخ سو، چې تر اوسه یی مزار ډېر مشهور دی.

## د قطب الدین اشعار:

د قطب الدین علمي او عرفاني شهرت خو له تیرو لیکنو ځخه تاسې ته ښکاره سو، چې دا نومړی بختیاري پښتون په عرفاني دنیا کې ځوني لوړ مقام لري، او اکثر د اولیاوو تذکره نگاران د ده احوال ذکر کوي. مگر دا عارف د پښتو یو خورا ښه شاعر هم دی، چې سلیمان ماکو یی پخپله تذکره کې د مناقبو تر شرح وروسته یوه عشقي سندره هسې را نقل کوی، او ځکه چې سلیمان د ده معاصر دی، نو یی قول د منلو وړ هم دی: *بختیار په پښتو سندرې کړینه اوښې تویوینه، خدای ته نارې کړې، غلبلې کړې، پاړکې لرینه چې یو یی دا دی:*

*ویر مې زړه سوری سوری کړ راته وگوره ملوکې!*

په دی شعر کی د پښتو شعر زوړ اثر او سلاست سته، یوه پردۍ کلمه په کښه نه ده، او د ادا ډول یی هم ساده اما ډېر بلیغ دی، د مینې واردات او د مین زړه احساسات یې ښه پکې ځرکند کړې دي. دا شعر لکه اوسنې عامیانه اشعار تکراریدونکی کسر هم لری. داسې ښکارې چې قطب افغان د مینې په دنیا کې تاوده جذبات لرل، او سلیمان ماکو چې د ده معاصر دی، دغه عشقی احساسات یې په داسې ډول بیانوي: *تل ژاړي، او نارې او غلبلې کړې، او د عشق سندرې لولې، له دغو عشقي نارو او سندرو ځخه یوه سندره اوس موږ ته پاته ده، چې د شاعر د زړه درد او سوزناکه جذبات ښکاره کوي*

